**د اتمانخېلو جغرافيه.**

جغرافيه د ځايونو مطالعه او د خلکو او دوي چاپيرياال ترمنځه اړيکې دي. جغرافيه هغه ساينس دي چې د مځکې د سطې تشريح سره معامله کوي. دغه شان د وخت د لوی قام پښتون هوم خپله جغرافيه ده او دغه جغرافيه کښې دننه قبيلوې جغرافيې دي. اتمانخېل چې کرړاني قبائل دي چې خپله لويه خاوره جغرافيه لري. اتمانخېل قبائل د پښتنو په لوی کور افغانستان کښې هوم استوګن دي سره سره کښې په د پاکستان د پښتونخوا نه واخله تر بلوچستانه ميشته دي. په پښتونخوا کښې په ډيرو سيمو استوګن دي. په پښتون خواه کښې ديو ځانله علاقه ده او دغه علاقه د انګريز په وخت کښې يو ازاد مځکه پاتې شوي چې انګريز ورته "انډيپنډينټ اتمانخېل کنټري" ليکلې د ديو علاقه زياتره غريزه سيمه د باجوړ د رود نه واخله تر د امبار د سيندونو په منځ کښې واقع ده، د مشرق خواته د رانېزی او سمه رانېزی تر پولې پورې د سوات د سيند او د پيښور د ضلعې په منځ کښې غزيدلې ده، په دې سيمه کښې اتمانخېل قبائل ميشته دي.

لنډه دا چې اتمانخېل د نن وخت په د مومند په تحصيلونه ميشته دي چې يو ته امبار اتمانخېل وايي او بل ته لمن اتمانخېل يا پړانګ غار وايي دغه تحصيلونه د

باجوړ او د ملاکنډ د اتمانخېلو سره لګیدلې چې باجوړ طرف ته تر رود پورې دغه علاقه غزیدلې ده. او دغه شان د ملاکنډ هوم. یو خواه د تنګې منډا چارسدې نه دغه مځکه شروع ده چې دغه پوله یې له محمدزو سره ده اود باجوړ د قزافې او دانشکول کلې پورې مځکه او دغه شان د ملاکنډ د کوټ اکرې نه تر هریانکوټه پورې. او دغه علاقایي داتمانخېلو په وړو څانګو ویشلي شوې.

بل خواه د اتمانخېلو خپله علاقه دا وس وخت د مردان سیمه کښې ده چې بهرې څانګه د اتمانخېلو پرې میشه ده، دغه علاقه دغه سیمه په سنګاوو، کوهې، برمول، میاه خان، پیپل، تر خرکی یادیږي چې مکمل ورکښې اتمانخېل میشته دي دغه سیمه نه بهر تر لوند خوړه پورې میشته دي چې خټک ورسره هوم بشمول په لوند خوړ کښې استوګن دي.

بل خواه د دیو سیمه په اورکزی ضلعې کښې هوم ده چې خپله خاوره لرې او د اورکزو سره په خواه کښې ژوند کوې او خپله خاوره یې تذ ننه ساتلې ده، او پولې د اورکزو سره لرې. دغه اصل ټاټوبو نه اتمانخېل قبائل خواره شوې چې نن وخت کښې په دیر کښې لوی علاقې لرې چې شمېر یې تر ډیر حده پورې زیات دي اتمانخېل قبائل یو خواه د باجوړ د ترکانړي قبیلې سره پوله لرې بل خواه د امبار طرف ته د مومند قبیلې سره پولې لرې او بل اړخ ته یوسفزو سره پولې لرې د مردان د سیمې اتمانخېل ګیر

چاپیر پولې د خټکو او یوسفزو سره لرې او په دیر په سیمه کښې اتمانخېل خپلې علاقې نن وخت لرې چې یه ډیر ځایونو کښې د یوسفزو سره ګډ پراته دې

په کوز وطن بلوچستان کښې په ضلع لورالای کښې هوم میشه دې چې پولې د کاکړو سره لرې او څه اتمانخېل د کاکړو سره ګډ پراته دې. د پښتنو په لوی کور افغانستان کښې په ځای ځای په ولایتو کښې میشته دې او ورسره د پښتنو ګن شمېر نورې قبایلې ورسیږي نور اتمانخېل خاوره واره تلې چې سوابې، سوات، شانګله، تر اټکه او بیا تر هیندوستانه خواره شوې.

کوم چې په لوی کور افغانستان کې اباد دي ځای په ځای اتمانخېل شتون لری په دغه اړه محمد حیات خان په خپل کتاب حیات افغانی کې وایي چې

(دی قبیلې ځنی کورونه د کابل په شمال یعنی کوه دامن کې میشته دي ... ددوي یو ښاخ کوچیان دي چې د سږو په مسم کې ننګرهار او په اوړی کې کابل ته راځي).

څه رنګه چې محمد حیات خان ذکر فیو وکړو چې اتمانخېل د کابل په شمال کې استوکن دی خو دغه یوزینی ندی بلکی اتمانخېل د افغانستان په ۱۸ ولایتونو کې ځای پر ځای استوګنه لری.

## .۱۸۴۹

د ۱۸۴۹ کال د اکتوبر په میاشت کې د اسسټنټ کمشنر لیفټیننټ ایچ بی لمسډن لخوا خبر ورکړ شو چې د بایزی د علاقې د اتمانخېلو کلیو په مشبته توګه د ټیکس له ورکولو څخه انکار کړی. او مقامی کوم چې به د انګریز له خواه ټیکس راټولولو هغه ته یې خبرداری ورکړه اتمانخېلو چې دلته به ټیکس هغستلو له نه راځی. دغه خبر د انګریز کمشنر ته وشه چې اتمانخېل د جنګ تیاری کی او له ټیکس ورکولو څخه یې انکار کړی. نه انګریز له دغه خطری لپاره زور راوستو چې اتمانخېل وزوری او ټیکس هغستل تري شروع کړی.

نه دغه وخت اتمانخېلو هوم خپل جنګی تیاری شروع کړو چې ګنړل یې چې دا انګریزان به ضرور له حملی لپاره راځی.

په دغه وخت کې د اتمانخېلو مشری ملکانو کوله چې اصف اتمانخېل د خرکی کلی وون

ازاد خان اتمانخېل. قدرت شاه اتمانخېل. محمد علی اتمانخېل او غازی شاه اتمانخېل د برمول . کلی. کرم اتمانخېل او جلاب اتمانخېل د میاه خان کلی. جلال اتمانخېل د سنکاوو کلی او محبوب شاه .اتمانخېل او طوطی اتمانخېل د پیپل کلی

یاده دی وی چې خرکی میاه خان سنکاوو پیپل کوهی برمول د اتمانخېلو مشهور کلی دی چې نن سبا د .تحصېل کاټلنګ مردان په حصه کې شمیر دی

د **۱۸۴۹** کال د ډسمبر په دریمه دغه انګریزی فوځ د لیفټیننټ کرنل جې براډشا سي بي تر مشری لاندې له پیښور څخه حرکت وکړو چې اتمانخېل زیر کړی. بل خواه اتمانخېل هوم خپل تیاری کړی د خپل وس مطابق چې د انګریز له فوځ مخنیوی .وکړی

په**۱۱** دسمبر کو لیفټیننټ کرنل بریډشا د اتمانخېلو په کلی حمله وکړه چې دغه حمله کې د پنجاب ۱۰۰ فوځیانو هوم حصه څخستی وه چې دغه انګریز فوځ مضبوط وي دغه جنګ د اتمانخېلو په سنګاو کلو شروع کړی. دغه سنکاوو کلې د اتمانخېلو ډیر په سخت ځای باندې میشته وو. شو چې لیفټننټ کرنل بریډشا د اتماتخېلو په کلی د دواړه طرف نه او هوم له مخي طرفه حمله وکړه چې اتمانخېلو ځوانانو له خپل طرف نه ډیری حڅی وکړی چې انګریز په شاه کړی خو د انګریز د فوځ توپونه په مدد له وجی یې سنګاوو کلی وران کړی شه. د یو طرف نه یې انګریز فوځ ډیر سخت قېسم ډزې

کولی په اتمانخېلو چې هغه اړخ چې دغه کلې يې په درې طرفه ګير کړي وو. دغه کې
.انګريز فوځ له خواه يو دسته د خپل فوځ د چپ لاس او د بل خوا حفظت کوو.

په دغه کې انګريز ته سخت نقصان ورسيده له انګريز د فوځ څخه وژنې وشوې او ډير
پکې زخمان هون شه. انګريز ليکي چې دغه اتمانخېل کرنل بريډشا ډير معمولي ګڼلی
.وو خو پنځه ساعته هغوی د هغه ځای دفاع کړی وه.

په ۱۸۵۵ کې اتمانخېلو ځوانانو يو ځل بيا په انګريز فوځ باندی وړی وړې حملی
شروع کړی چې په دغه وخت کې يې د انګريز له خواه چې کوم سامان تللو راتلو هغه
باندی اتمانخېل ځوانانو حملی شروع کړی بلکې د دغه سامان لوټ کول يې شروع
کړه ځکه چې انګريز په دی وطن قابض شوی وو چې پښتنو ته دغه قبول نه وه.
.

.په دغه بابله محمد حيات خان په خپل کتاب کې ليکی چې

مشريقې برخه کې بهمری ځانګې اولاد اسمعيل خېل داوت خېل او سه سمده ميشته دي. د
بهمري اتمانخېلو وسله والو کسانو شمير د دوه زر وه تنو خواه او شاه کې دي. دوي ډير لوټماران
او جنګيالی دي خو د کال (۱۸۷۷) د جنوری په مياشت کې د انګريزانو د فوځ په زريعه او د پيښور
کمشنر جان بيچر په تدبير د هغوی قوت وځپل شو او وس دوی سره رعيت په ډول ګوزاره کوي .
دوی لومړی د غلا او لوټ ماری سره مينه لرله او هندوان به يې نيول او له هغوی به يې د خوشې

کولو په بدل کې پیسې اخستلې . د میاه خان سیمی اوسیدونکی ملک ازاد اتمانخېل چې د ... د ډلې مشر وو د ګولی د لګیدو له کبله ګوډ شوي دي. د کوهی سیمې ملک محمد علی اتمانخېل یو معتبر سړی دی.

څه رنګه چې محمد حیات خان زکر وکړو چې اتمانخېلو ځوانانو به له دغه ځای چې کوم هیندوان یا انګریزان تیریدل اتمانخېلو به یې د لوټ کوشش کوو ځکه چې په دغه وخت کې انګریز په پښتون وطن راغلی وو او پښتون وطن یې د خپل لاس د لاندې راوستو کوشش کوو.

## .۱۸۵۱

ناوی ډهنډ د اتمانخېلو په علاقه کې دي. د باجوړ په مځکه د مومندو په پوله د امبار علاقه کې چې د اتمانخېل قبیله د بوټ کور ښانګه اباد دی. د هغوی نه مشرق طرف ته د ارنګ او برنګ اتمانخېل پراته دی. د دي قبیلې خلک د پنجکوړي سیند (دریایې سوات ) په جنوب غاړه د غره په لمنو کې په پړانګ غار ګنډیری نری او به سپن خړی ناوی ډهنډ کوټ ټوټی اګره مینه اریان کوټ کې هم پراته دی. اتمانخېل ساده سوچه بهادر توریالی او جنګیالی پښتانه دی نران غازیان دی. د فرنګی د راتللو نه روستو که قبائلو د فرنګیانو سره د خپلې علاقې په پوله او برید جنګونه کول. اتمانخېلو په غزا پسې مزي پسې پسې مزی کولی. د خپلی پولی او برید نه ډیر جدا د پیښور او مردان په علاقو کې د انګریزانو په فوځې کیمپونو حملې کولې. چنانچه هم دغه شان واقعاتو په وجه د ناوی ډنډ د غزا واقعه پیښه شوي وه. د دي

غزا د واقعاتو بیا نولونه نه وړاندې د هغه حملو بیا نول مناسب معلومیږی چه اتمانخېلو غازیانو د مردان او پیښور په علاقې کړې وی.

په ګوجر ګړی حمله د **۱۸۵۱** په اخر کې فرنګیانو د وادی پیښور او د ایسفزو د علاقې د پیمائش او نقشه کې کار شروع کړې وو. د ملک خلق پرې سخت ناراضه وو. او مخالفت ته یې ملا تړلې وه. د دې ګران کار دمه "مسټر جیمز" نومی یو فرنګی اخیستې وه او د هغه د حفاظت دپاره د ګائیډ پلټنی رسالدار فتح خان خټک مقرر شوې وو. جیمز او فتح خان د پیمائش د کار دپاره سره د یو فوجی دستې د مردان ښار نه دوه میله شمال طرف ته د ګجر ګړی په مقام دیره وو. چې د شپې په وخت کښې **مکرم خان اتمانخیل** د ناوې ډهنډ د دوه **۲۰۰ سوه** په اسونو سورو سورو غازیانو سره پرې حمله اوکړه ، دغه وخت انګریز لیکې چې په دمه نېټه زمونږ فوځیانو د اسونو اوازونه واوریدل چې د اسونو د خپلو اوازونه وو. دغه کې د اتمانخیلو د خوا اواز اوکړی شه.

اواز اوشه چې څوک یې

جواب راغی چې ملګری

انګریز ته شک اوشه او رسالدار فتح خان خټک بیدار شه او له خپلې خمې څخه بهر شه چغې یې کړې چې دښمن حمله کړی ده. او خپلې توری ټوپکې یې بهر کړی. دغه کې مکرم خان اتمانخېل حمله ډیره زوروره وکړه چې ډیر فوځیان یې اوژل او څه پکې زخمان شه. دغه رنګه یې اسونه زناور هوم مړه او زخمیان شول.

جيمز په دهغه شپه چرته بل ځای شپه وه. په دي موقع رسالدار فتح خان ختټک ژوبل شو مګر مړ نه شو. بل طرف ته د ګائيډ پټنی څه سپاهيان مړه او څه ژوبل شول. او غازيان کامياب واپس خپل وطن اتمانخېل ته راغلل. سر جاج بنګ هؤنډ ليکی چي دا حمله د بهادر مکرم خان په کمان کښې شوي وه چې انګريز له خواه مکرم خان په جنګيالی او توريالی جنګجو ياد کړی شه. . سر جارج مخکښې ليکی چې مکرم خان (اتمانخيل) د سرحد په بهادرانو کښې ډير زيات بهادر يعنې زړور او وتلې شوي انسان وو .

## ۱۸۵۲.

په کال۱۸۵۲ کې اتمانخېلو د هشتنګر کې او د دوی د غرونو جنوب ته په مايره کې په پرله پسې د انګريز په زد بريدونه سره لوی مصيبتونه انګريز ته رامينځته کړل. د ابازی چارسدی قعله چې په کال ۱۸۵۲ کې جوړه شوي وه له انګريز له خواه چې د اتمانخېلو او د مومندو د لښکرو مخر نيوي وکړي. او په کال۱۸۵۲ کې يې اجون خان ته پناٰ ورکړه چې د تنګی خان وو. دا مشر يو نر ځوان وو چې له انګريز په زړ يې کړکه .لرله او د تنګي کلي کې اوسېدو.

اجون خان به خپلي مځکې بغير کرلی پريښودل چې دغه انګريز ته خواخه نه وه ځکه چې انګريز به هغه وخت به د خلکو نه د فصل دي کيدلو څه حصه هغستته که چري دغه فصل به خراب کړي شه. نو اولټه به د انګريز له خواه د هغه سړي نه جرمانه

هغستې کېږدله. اصل کې اجون خان انګریز ته زور ورکولو چې څه له ستار واک لاندې ژوند نه کووم. دغه ټسل هوم د اجون خان دانګریز سره په تېرو څه وجه له .کېدله راغلي وو

مخکې اجون خان د اتمانخېلو وطن ته لاړو چې او الته یې پنا وغستله او اجون خان د انګریز له خوا انتظار کوو دغه وخت کې یې ځان سره یې نور هوم د انګریز له خوا .تښتیدلي کسان د اتمانخېلو په وطن کې ځان سره ځای کړل.

په کال ۱۸۵۲ د اپریل د میاشتې په ۲۰مه شپه اجون خان د انګریز په زد د ۲۰۰ آسونو له اتمانخېلو ډلې سره د چارسدې په لوی کلي برید وکړو چې د هشنغر مرکزي دفتر وو. دغه ډله د لمن اتمانخېل څخه راغلې وه. چې نن ورته پړانګ غار اتمانخېل وایې. په دغه برید کې یو تحصیلدار اوژلی شه. او دغه حال یې د دغه تصیلدار د طرفدارو سره هوم وکړو چې د تحصیل نور اهلکار او فوځ هرڅومره چې وو هغه یې مړه کړل او دغه ځائې د انګریز له خوا یې ډیر سرکاری مال هوم تالا کړل. چې انګریز لیکلې چې لوټ یې کړه. مخکې له انګریز له خوا ولیکړې چې دي. لښکر په ابازی هم دغه وخت قبضه .وکړه خو له څه وخت واپس اتمانخېلو وطن ته لاړل.

چنانچه د اتمانخېلو قبیلې د دې قسم حملوں او غزاګانو د لاسه چې فرنګی تنګ شه. دغه نه پس چې کله انګریز یره محسوس کړه په کال ۱۸۵۲ کې په ۲۸مه اپریل انګریز

له خوا د اتمانخېلو خلاف د جګړې علان وکړو چې له پېښور څخه انګریز فوځونه . راراوانیدل پیل کړه.

دغه فوځې دسته له انګریز له خوا (سر کولن کیمپبیل ) په مشرۍ کې کوله چا چې په اباځۍ کې پړاو واچوو او ډپټي کمشنر ایچ آر جیمز د فوځ سره وو. اول واری یې په ناوی ډهنډ حمله وکړه. د دی مقام تعریف دا وو چې په ټولو قبائلو کې چې په هر ځومره مقاماتو د فرنګی فوځونو حملې کړیدی. په هغې کې ناوی ډهنډ ډیر مستحکم او مضبوط مقام وو. مخکې د دغه کلي نه ډیره پښه او مظبوطه قعلعه تاو وا چې دغه قعلعه د کلي څلور طرف ته وه. په دغه قعلعه ورغتل ډیر زیات ګران کار وون چې مخکې انګریز د دغه قعلعه په نیزدی فصلعه کې پړاو واچوو چې دغه کې لا جنګ شروع شوي نه وو. او انګریز فوځ له سامان ارسدا چلیدو او اتمانخېلو سره په خبرو اترو کې د وخت اړولو کوشش کیدلې شه په دغه کې انګریز فوځ قعلعه ته ډیر زیات نیزدی شه چې چې اتمانخېلو ځوانانو او انکریزانو یو بل لیدلو بلکې اوازونه یې د یو بل هوم اوریدلی شه. دغه په منځ کې سمدستې د اتمانخېلو د ځوانانو د قعلعه نه پرې راوتل او د تکبیر چغه یې کړه. انکریز مخکې بیانی چې دغه حمله اصل کې ده فوځ په خیمو وه چې سمدستې پرې راغله او وایې چې د دغه اتمانخېلو ځوانانو سره زمونږ په مقابل کې اصلحه ډیره کمه نه وه. دغه کې انګریز پهره دارو سمدستې د حملې خبر فوځ ته ورکړو. دغه کې انکریز فوځ سامان سمبالول کې وخت لږیدو. چې دغه وخت انکریز اسرار جی این هارډنګ ډیره بهادری وکړه خپل فوځ ي څه نه څه بچ کړو. جنګ او شه

. مګر انګريزانو چې په کوم سوچ راغلې وو چې مونږ به قعله ورانه کړو هغه پوره نه شه او ارمان يې هوم دغه رنګه پاتې شه. نو هر کله چې انګريز فوځ پوهه شه چې د دوی داسې وهل او له هغه ځای نه مخکې د دروازی د مقام په لاره تلل او مخکې د کوټ مينه ټوټی اکره نومی غرئيزه درو تنګو سختو او خطرناکو ځايونو ته دننه ورتلل او له هغه ځايې د لاس لاندی راوستل ګران کار دی. نو انګيز مخ په قبله وکړه او د هسنغر ډير مشهور کلی تنګي په مقام خپل پړاو ونيوو. خو دغه په نتيچه کې د انګريز له خوا يو جمعدار او څلور نور زخميان شول.

اځر افغانی صيب ليکې چې.

هر کله چه دَ فرنګيانو فوج په تنګي بانده کيمپ او لګاوه..نو اُتمانخيلو په مشهور مرکزی کلی پړانګ غار ــ ئ دَ حملے کولو اراده اوکړه .. داکلے دَ غاړے دَ اُتمانخيلو په قبلئيزه حصه کښے په داسے برېد دے چځنے دَ اتمانخيلو دَ غرونو په جنوبی لمنو کښے دَ هشنغر علاقے ته سيلمه او دَ اوتمانخيلو دَ امبار اُتمانخيل او دَ پنډيالئ مهمندو ته نزدے دے..دَ دے ځائ دَ وهلونه دَ فرنګي غرض په آواره او دَ غره په لمنو کښے آبادو اُتمانخيلو طاقت ختم کول وو..په

پړانګ غار چه فرنګي کومه حمله کړے وه

تنګي ته دَ انګرېزانو برېټيش فوج دَ وړاندے

نه راغلے وو..پنځه زره فوج ـ ئ نور راجمع کړ. دّ دوئ

په مقابله کښے دَ اوتمانخيل ښکېالی وو..ورسره دَ

هغوي په اِمداد کښے دَ روانی (راونړی) قوم خلق وو

او څه دَ سپېن اکبر بادشاه صاحب دَ لښکر غازيان وو. او دَ پړانګ غار غزا له هم اُتمانخېلو دَ امداد دَپاره

راغلی وو دغه ټول په شمار باندے درے زره ۳۰۰۰ وو

په مئ ۱۸۵۲کښے انګرېزانو دَ کرنل سرکولن کیمپبل المعروف په لارډ کلائېډ په کمان کښے . حمله اوکړه ..دَ فرنګي فوځ دَ ګنډيري او بازي کلي نوے کلو په منځ کښے په مېره باندے دَ تنګی کلي نه شمال طرف ته حمله اوکړله ..دَ غره په لمن (کوه دامن)کښے اُتمانخېل قوم په مشهور کلي پړانګ غار ـــ ځ چپاؤ اوکړه له هغه ځايي پري اتمانخېلو ځوانانو حمله وکړه چې څو ورځي پر له پسې جنګ اوشه چې په دغه کي انګريز د توپونو ډزي په اتمانخېلو شروع کړي وي. د پړانګ غار په جګړه کي انګريز ته هوم کره نقصان وشه. چې ټوټل پکې ۱۸ کسان مړه او زخميان شه.

مخکې انګريز وايي چې د پړانک غار اتمانخيلو علاقه ډيره سخته وه چې لوړ لوړ غرونه وو.

دَ فرنګی فوځ په کلی ورـــغ وران ـــځ کړ..نور دَ غره درو ته دَ ننوتلو تاب ـــځ نه لېدو .. واپس شه. دغه لښکر کي د ټوټۍ اتمانخېل هوم مدد کړي وو د اجون خان او هغه د پلار حميدخان.

انګريز په ابازے نومی کلی ورغلل داکلے دَ درياـــځ پنجکوړه په غاړه دَ مهمند اودَ اوتمانخېل بريېد او دَ هشنغر په بره سر دی..دلته ـــځ قلا جوړه کړه . چه دَ اوتمانخېلو او مهمندو دَ حملونه دَ هشنغر د علاـــقے حفاظت اوکړلے شي لکه چه مخکښي ورته اشاره شوے ده کښے ده (رواني) قبيلے خلق په دغه ورځو کښے په

ګنډهېرى کلى باندے پراته وو..دَ فرنګى فوځ چه دَ پړانګ غار دَ جنګ نه راوګر ځېد په ګنډېرى ـــ ئ حمله اوکړه او کلے ـــ ئ وران کړله ..او دـــ ئ قام مشران ـــ ئ اونېول لېږے ورځے پس دَ رووانى قبېلے مشران راغلل..معافى ـــ ئ اوغوښته درخوست ـــ ئ منظور نه شه .. البته کرنل مېکسن چه په دغه ورځو ـــ کے کښے دَ پېښور کمشنر وو هغه ترېنه يوه اقرار نامه وغسته ..چه دَ انګرېزانو او قبائلو دَ دـــ غ اقرار نامے مطابق دَ روانى قبېلے خلقو کېـــ ے دَ ګنډېرى نه اوچتے شوے او دَ جلاله (صلع مردان)په مېره ـــ ئ دېره اونېوله ...جلاله ته درانى قوم اتېا ګنډېرى نه راغلے وے

په دوي کښے يوه کورېنۍ دَ پېرانو خاندان وه چه دَ

حضرت اخوند محمد قندهارى کاکړ دَ ځوئ محمد صالح المعروف په پېر صالح اولاد دے ..دَ پېر صالېح زيارت په طورو مردان کښے ..دَ کورېنۍ دَ روانى قوم ستانه دار دى او په دى غزا کښے دَ پېرانو دَ دے کورېنۍ مشرانو ښه مردانه بهادري کړے وو..دَ روانى قوم سره يوه بله کوېنۍ چه ګنډېرى نه جلاله ته په کډه راغلے وه هغه دَ اخوند زادګانو کورېنۍ وه چه حضرت مېان صاحب محمد عمر دَ څمکنو دَ مشهور مرېد اخوند صوفۍ عبدرحمان دَ دوه ځامنو اخوند زاده محمد صدېق او اخوند محمد رفېق اولاد دـــ ے ..دَ اخوندزادګانو په دے کورېنۍ کښے اخوند فقېر شاه دَ ناوى ډهنډ او پړانګ غار په غزا کښے شامل وو..اوبېا چه انګرېزانو ګنډېرے کلے وران کړ .. نو ..دَ روانى قام دَ غازېانو سره جلاله ته راغلي وو

کله چې پړانک غار یا لمن اتمانخېل کلي وران کړي شه اجون خان لالپوی ته جلال اباد ته کابل ته لاړو. او واپس اتمانخېلو ته په کال ۱۸۵۷ کې راغو چې یو ځل بیا یې د اتمانخېلو د وطن نه د برید پیل کولي اراده ولرله.

## ۱۸۶۶.

په کال ۱۸۴۹ کې چې د کرنل براډشاو په مشرۍ کې د مردان په اتمانخېلو کوم فوځې اپریشن شوي وو او اتمانخېلو پکې مبارزې کړې وې. او په کال ۱۹۵۵ کې یې پرې ۲۰۰ روپۍ جرمانه لږولې وه او کلي یې وران کړي شوي وو. دغه ځای به اتمانخېلو د انګریزانو او هیندوانو سامان لوټ کوو. خو دغه اتمانخېل واپس خپل کلي په هغه زوړ ځایونو اباد کړي وو.

.

د کال ۱۸۶۳ د انګریز سره د امبیله په جګړه کې د اتمانخېلو ځوانان د انګریز په زد بونیر ته تللي وو کوم کلي چې د اتمانخېلو په مردان سیمه کې د ملاکنډ په سنګ پرا ته دي. هغه کلي چې میاه خان سنګاوو پیپل برمول خرکی دي. دغه کې میچر جیمز

اویل چې دوی اتمانخېلو باندې سخت کاوایې وکړی چې په امبیله په جنګ کې یې ولې زمونږ په زد ودریدلې.

په مارچ ۱۸٦۴ کې یې پرې ۲۵۰۰ جرمانه ولږوله خو انګریز وایې چې دغه ملکان د یو بل څخه لرې لرې ولاړ وو چې داسې معلومیده چې دوی په خپل منځ کې څه تسل لري. خو وجه دغه جرمانه وه. مخکې انګریز وایې چې دغه جرمانه دغه کې جرمانه د ملکانو سخه ادا شوه.

چې کله واپس وطن ته لاړه دغه مشران د دوی په منځ کې اختلاف پیدا شه. دغه کې څه ملکان خپل ځایونه بدل کړه چې باز ګل ملک کوهی ته لاړو او سمت ملک د کوهی نه برمول کلی ته په کډه شه. همدغه اختلاف بیا د پیپل کلي او میاه خان تر منځ وغځېدله او له یوه لوري څخه بل لوري ته د کورینو منتقلې وشوه. او په دي توګه د کوهي او پیپل دوه کلي په میدان په مځکه پراته وو چې مخامخ ورته د برمول میاه خان او سنګاو وو.

د جولای ۱۸٦۴ کې کې اسسټېټ کمشنر له انګریز خوا اطلاع وشوه چې دغه یو طرف ته دوه کلي او بل طرف ته دری کلي په خپل منځ کې دښمنی راوانه ده.

په ۲۱ اګست د کوهي او برمول په منځ کې جنګ اوشه چې له دواړه غاړې اتمانخېلو څخه وژنې وشوي او څه پکې زخمیان شه. دغه جنګ څه وخته پوری بار بار وشه چې په خپل منځ کې په امن پاتې نه شه .

په کال ۱۸۶۵ کې په دوی جرمانه ولږیدله او څه ملکان یې ونیولي شه. خو دغه نه پس انګریر خپل فوځ تیار کړو چې د سنګاو او برمول کلي تباه کړي .

د کال **۱۸٦٦** په ۷ مه جنوری د پېښېور څخه د انګریز فوځیان راوتلل مردان ته او بله فوځې دسته له پیندۍ څخه راوتله او بله د ایبټ اباد څخه چې په نوښار کې د بریګیډئر جنرال ډنسفارډ او د پولیټیکل افسر کرنل بیچلر په مشری کې جمع شه. دغه فوځ په بله ورځ مردان طرف ته راغي .

په ۱۹ مه نېټه دغه فوځ میاه خان طرف ته لاړو چې نیم فوځ یې پریخودو چې دغه کلي وران کړي باقې فوځ یې د سنګاوو په لوري بوتلو چې سنګاوو کلي یې هوم وران کړو دغه کې دغه کلي وسوځولی شه. دغه کلي پلی د خان په وړاندې تبا شه .

یوازې د اتمانخېلو د مشران چې د شیرخانه او زومندی په دې یره وو چې زمونږ کلي به وسوزلی شي. په بله ورځ فوځ له میان خان څخه لاړو چې باراون راخکې شوي وو .

خو دغه کلي وران نه کړي شه په دغه کلي باندې د دوه کالو لپاره جرمانه ولږيدله.
.برمول کلي تبا شه. ديولونه يې په هاتيانو ونړيدل
په ۲۲ مه نېټه کمشنر د پلی له خانانو سره سيټلمنټ وکړو

## .۱۸۷۸

د کال ۱۸۷٦ د دسمبر ۹مه نېټه د سوات په نهری کينال باندې ۱۰۰ تعداد کې اتمانخېل ځوانان راغله د مياں روکنديين په مشری کې او حمله يې وکړه چې هغه له کبله دغه حمله کې له انګريز له خوا وژنې وشوې او له کيمپ هغه ځايه وران کړي شه او له هغه ځايه اتمانخېل ځوانانو مال هوم په خپل لاس کې وغستلو. او له هغه ځای اتمانخېل واپس خپل وطن ته راوختل غرو ته. دغه د اتمانخېلو ټولنه د امبار او پړانګ غار د .بوټ کور ځانګې سره تعلق لرلو .

د کال ۱۸۷۸ کې له انګریز حکومت له خوا غوښتنه وشوا چې دغه د سپری کلي باندی فوځی کاروایې وکړي. سپری هغه کلي کوم کې چې میاں روکنديين اوسيدو. او حکم وکړي شه چې دغه سړی ونیولی شې. دغه کلي د انګریز د واک لاندي د غلاقې سره په سنګ وو. دغه فوځې کاروایې داسې پلان شوه چې خبر چاته هوم ونشې. چې فوځ په .پټه لاړ شې او خپل کار وکړي .

په کال ۱۸۷۸ فروری په ۱۴ مه نېټه یو فوځې دسته چې له کارفس افق ګائډ له څخه وه. د مردان د سیمنې نه دغه دسته راوانه شوه چې په اسونو سوارا وو چې هر انګریز فوځې سره د ۶۰ کارتوس مرمۍ وو. د دغه انګریز ټولنې مشری کیپټن ویګرام بیټې کوله چې .ورسره کیپټن کاواګناری هوم وو چې پولیټیکل کمشنر پښیور وو

په هغه لار یې نیولې وه کومه لار چې د ابازۍ او د تنګې خاص غټ سړک دی. چې په لګه فصله تنګې کلي ته نیږدې شه. په شمالی طرف یې د غرو نه واوړیدل او د سوات کینال له کرښې څخه تیرودو ورسته ۲ میله لرې د ابازۍ څخه او هلته ښکته شول اسونه یې د شپیته کسانو په واک کې پاتې کړو چې ابازی قعله ته یې بوزی. باقې فوځ پیدل راوان شه. له هغه وریسته د په یو تنګه لار انګریز فوځ کوټل سپری ته ورسیدل. دغه ځای څلور سحت راورسیدل. دغه وخت سپو غپل شروع کړه چې مونږ وګڼل چې د سهر انظار وکړو. خو د معلوماتو څخه پولیټکل افسر اویل چې میاه .رکنديين به په جمات کې وي یا به د کور په برج کې به وي دا ځایې د کلي منځ وو

سهر چې رڼا و لېږېده انګریز حمله وکړه او فوځیان د کلي په جمات ورغلل او جمات یې په خپل قبضه کې راوستو. عغه کې د میاه رکندین کور برج ته ورغلل چې هغه کې هیڅ څوک نه وو. دغه کې انګریز ته خبر وشه چې میاه رکندین د جمات په شا په یو کور کې پټا هغستې هغه ځای فوځ وپس شه چې خلکو ته یې اویل چې اصلحه ټوپکې مونږ ته حواله کړی ګنی د چټونه به درته وسیزو. دغه وخت جګړه وینختته له انګریز او د اتمانخېلو. په دغه کې دفوځ له خواه یو کس د میاه رکندین وراره اویشو او بل یې زخمې کړو په کور. او دغه کې د فوځ له خوا میاں رکندین ته اویله شو چې وصله ګزار کړه. لګ سحت پس بل یو سړي په دغه کې له فوځ له خواه ویشتلې شه چې میاه رکندین شهید کړي شه ځکه چې انګریز ډیر په چال رنووتې وو یو خواه دغه کلي واله نا خبره وو بل د انګریز طاقت زیات وو چې هغه له کبله په کور کې ورته څو کسان اویشلې شه. دغه کې د پاسه غر نه ځوانانو په انګریز فوځ ډزي شروع کړي او فوځیان یې نشانه کړل دغه ننګیالو ځوانانو د مشرق په وچت غره پوزیشن اغستی وو. چې سخت جنګ اوشه. انګریز وایې چې دغه ځوانان نه څه خلک اویشتو شه. له انګریز له خواه هوم اویشتې شه چې زیاتره پکې زخمان شو.

دغه کې فوځ واپس ابازی قعلعه ته لاړه

له هغه وریسه په اتمانخېلو د انګریز له خواه ۱۰۰۰ زر روپی جرمانه ولګیده

دغه کې د اتمانخېلو څانګې زیرکو او پخی کلو انکار وکړو او جرګه هوم ماته شوه

## .۱۸۸۲

په کال **۱۸۸۲** کې د سپرې کلې ځوانانو په یوریا ځل بیا برید کړي وو چې مال لوټ کړې شوي وو. او له هغه پس په دوی په دسمبر په میاشت کې له انګریز له خواه جرمانه ولګیده چې دغه جرمانه ۳۰۰ روپۍ وه ,

## .۱۸۹۵

ه کال ۱۸۹۵ مه نېټه کې چې انګریز د دیر په لورې چترال تللو. اتمانخېل د انګریز خلاف مبارزه کړې وه چې اتمانخېلو نه غوښتل چې انګریز بره چترال ته لاړ شي. دغه کې اتمانخېل وو چې زیاتره پکې د اتمانخېلو شموزی ځانګه وه. مخکې انګریز وایې چې اتمانخېلو د تالاش دیر نه تر سدو دیر پورې زمونږ په فوځ او په فوځې سامان ډزې کړې وې. او خاص کر د دغه کال د اپریل په میاشت په ۱۳ مه او ۱۷ نېټه باندې.

انګریز لیکې چې په اپریل ۱۱مه نېټه مونږ د شکو کس په لار حرکت کوو چې دغه ورځ مونږ ته سخت پریشانی شوی وه په تللو کې. وایې چې مخکې مونږ شکوکس نه سدو او خونګی طرف ته تلو له سیند له پوره غاړه کوم خواه چې ظلم نومی ځای دی د هغه ځای

اتمانخېلو ځوانانو ډزې په مونږ وکړې چې مونږ يې ېې ځایه کړو. مخکې وايې چې لیپټننټ کاکریل دغه ورځ د پل لاپاره ځای کتلو چې فوځ ته اسانتیا شې چې له دغه کېبله ځمونږ کار پوره نه شه.

په ۱۳ او ۱۴ نېټه په شپه اتمانخېلو په انګریز برید وکړو چې ډیر زیان یې ورته ورسو او اتمانخېلو ډیر په ننګ او غیرت باندې د انګریز خلاف جنګ اوکه. چې له انګریز له خواه ۲ فوځیان افسران او ۳ عام فوځیان اوژلی شه. چې دغه فوځیان کې لیپټننټ کرنل بیټي هوم شامل وو. د انګریز د فوځ څخه ۲۱ فوځیان زخمیان شه. دغه کې د اتمانخېلو ځوانانو څخه هوم شهیدان شوي وو چې ډیر ېکې زخمیان شوي وو.

**.۱۸۹۷**

په کال ۱۸۹۷ کې اتنانخېلو د انګریز د ملاکنډ په پوسټ حمله ور شوي وو. چې زیاتره پکې دپړانک غار یا لمن اتمانخېل او شموزی اتمانخېل وو. ډیر اتمانخېل د مومندو سره هوم میلاو شوي وو د هډا مولا په مشری کې چې په شنکرګړ کې حمله کړي وه. او د شبقدر په جنګ کې يې پو حصه هغستې وه. دغه وخت شموزی اتمانخېل هوم د ملاکنډ چکدري په حملو کې حصه هغستې وه او پس کې اتمانخېلو کوشش وکړو چې د پانجکوړی د سیند پل ونیسې او د انګریز د باجوړ په تللو يې سخت مخالفت لرلو. خو په دغه کې د انګریز فوځ د جنرال میکلیجان په مشری کې چې یو بریګیډ فوځ

وو په دغه پل بانديې ورسيدو. دغه نه پس جنرال بيندېن بلېږ ګوسم کلي ته راغې چې اتمانخېل دغه وخت جرګه وکړه چې مونږ به په امن اوسېږو. خو دغه جرګه کې له انګريز له خواه وصله وغښتلی شوه چې څه لګې ټوپکې ورکړې شوي خو زياتو اتمانخېلو وصله ورنکړه. خو دغه کې جنرال سر بيندېن بلېږ د باجوړ په تلو بوخت وو چې خپل تلل يې جارې وساتل. دغه نه پس ۱۰۰ شمير کې شموزی اتمانخېلو د مامونډو سره شامل شه چې په جنرال جافريز په کيمپ حمله وکړي. دغه کې د بوټ کور يا بوټ خېل اتمانخېل هوم چې په دغه وخت کې د انګريز له طرفه څه خاص جګړه ونه شوه. دغه کې سامان د ماندل اتمانخېلو د مرخنۍ څخه هغستې شوي وو چې دغه کلي واله .د سوات په جګړه کې هوم شامل وو.

په ۲۷ جولايی باندې اتمانخېلو او سواتيانو سره په ګډه د کوتل په فوځې کيمپ حمله ور شوې وو چې او انګريز وايې چې سرې په سوات سيند اوړې او له نور لښکر سره يو کيږې. مخکې انګريز ليکی چې په دغه ورځ جنګ پوره ورځ راوان وو چې مونږ ته مشوره راکړې شوه چې دغه کيمپ پريخودلی شې کوم خواه چې د انګريز د فوځ ۳۱ پنجاب ايفينټري پرته وه. ځکه چې دغه د ملاکنډ د کوتل پوسټ لپاره ضروری وه چې په شمالی پوسټ باندې د لښکر له خواه غټی حملې شروع وې او دغه کيمپ کې فوځيان محفوظ نه وو چې ځان يې د لښمر څخه بچ پاتې کړی وو. دغه وخت کې د مردان د سيمې نه نور فوځ راورسيده. او لښکر کې اتمانخېل نور هوم په لوی تعداد کې شامل مړې شه. مخکې ليکې چې دغه مسلسل حملې د د لښکر له خواه د اګست ۲ مه نېټه

پورى ورسيدله. په دغه جګړه کې د اتمانخېلو ملک ميورو اتمانخېل شهيد کړي شه چې له اتمانخېلو له خواه يې مشري کوله په دغه حملوں کې. مخکې ليکې چې په دغه جګړه کې د عمره خان رور زين الله هوم موجود وو چې پس کې د هغه اس په زخمې حلات کې موندلی شوې وو. په لښکر کې شهباز خان د هشنغر اتمانزو سره د ۱۲۰ ځوانانو شامل شوي وو. مخکې انګريز وايې چې په لښکر کې زيات ځوانان د اتمانخېلو د کوهي مياه خان سنګاوو کلو نه هوم شامل شوي وو. مخکې انګريز ريپورټ کوي چې په دغه مسلسل حملوں کې زمونږ فوځيان ډير سخت ستړې شوې وو. د لښکر له خواه ځکه چې دغه د پښتنو ځوانانو لښکر په ډير جزبه او په ډير حمت سره چنګيدل د انګريز په زد. په دغه جنګ کې د اتمانخېلو د اتمانخېلو د اصېلو نه واخله تر شموزو پورې په پوره ډول اتمانخېلو شرکت کړي وو چې د خوا او شا نور پښتانه قبيلو پکې هوم په يو لښکر کې جنګيدلې وو چې دغه کې د سواتي اديزى د تالاش خلک باجوړى د ميدان او جندول خلک دوشخېل. چې دغه جګړه کې د پښتنو لښکر له خوه په چکدره باندې ۵۰۰ سوا خوا او شاه شهيدان شوې وو. بل خواه وايې چې په چکدرې په غزا کې ۳۰۰۰ شهيدان د پښتنو د لښکر له خواه شوې وو.

د ډير ليوى هوم څه مليشه په لښکر کې شامله شوې وه.

په ۲۹ جولائی انګریز د چکدری نه ریپورټ کوي چې میاه ګل لښکر کې شامل شوي چې دغه لښکر کې منکی مولا اتمانخېل بونیروال دی او وایي چې په دي وخت کې زمونږ خلاف اتنانخېل رنیزی دوشخېل او څه پکې سواتی هوم شامل دی.

په ۴ مه اګست په نېټه انګریز ډېن ریپورټ کوي چې په چکدره او ملاکنډ کې چې کوم لښکر دی هغه کې اتمانخېل باجوړی سواتی رانیزی او دشخېل شامل دی چې په ملاکنډ باندې د لښکر تعداد شل زره دی او په چکدره کې اته زره دي. مخکې انګریز وایې چې په دغه چکدرې په جګړه کې د دیر لیوی هوم حصه هغستې وه خو د دوی جعمدار زموتږ له پاره وژلي شوی دی په دغه جګړه کې.

اخر افغانې صیب څه داسې لیکې چې په کښې هر کله چه په ټولو قبائیلی علاقو باندې انګریزانو فوځونه ورواچول. جنګ ئې تود کړ. په ملاکنډ یې هم حمله اوکړه. سزتور فقیر غزا له راغے. د اتمان خیلو نمر ختیزه علاقه د ملاکنډ ایجنسی د سم رانړی زئ او سوات رانړی زئسره په پوله پرته ده نو په اتمان خیلو کښې هم حرکت پیدا شه. د ملاکنډ په جنګ کښې یې د سوات. دیر. باجوړ. مهمند د غازیانو سره پوره امداد اوکړ. ځوانمروی یې ښکاره کړه بهادری ئې اوکړه. کفار ئې اووهل د دغه جوم په بنا د په اخر کښې د کرنل ریډ په کمان کښې په اتمان خیلو باندې انګریزانو فوځونه حمله اوکړه دا حمله په دوه غاړے وه. یوه حصه فوځ سوات سیند په غاړه په قلنګئ دره باندې راواوخت اګره. ټوټئ. کوټ. مینه طرف ته راتاو شه. او بله حصه لښکر د درګئ

نه په آوره کښېد اتمان خیلو د غرونو نه په جنوبي لمنو کښې په ناوےډنډ. سپری. بوچه. او پړانګ غار حمله اوکړه. د ناوے ډنډ قلا چه به کښې نه وه وهلے شوې هغه ئې په دے جنګ کښې ورانه کړه. ځکه چه زیات غازیان هلته په اګره اوټوټئ کښې په جنګ کښې ګیر وو. ډ پړانګ غار اوسپری ابادی وراــنے شو لے.

مخکې انګریز وایې چې دغه وخت د مرخڼئ په پیښه کې اتمانخېل په امن وو چې فوځ په باجوړ کې لا میشته شوې وو. دغه وخت د جنرال جیفریز جنرال جافریز په مشری کې اراده وکړه چې په انزرګئ دغه فوځ اتمانخېلو ته نوتلو خو فوځ له په باقي باجوړ کې ضرورت وو چې هغه له کېله دغه د اتمانخېلو خلاف جنګ پاتې شه. خو انګریز له خواه اتمانخېلو ته دا وړاندیز پیش کړي شه چې تاسو ټول تسلیم شئ.

په نومبر ۲۲ نېټه ابازئ ته ولیبړلې شه د لیپټننټ کرنل مونټانارو په مشرئ کې چې د پړاګ غار د اتمانخېلو سره معمله وکړي. په ۲۳ مه نېټه د کرنل ریډ په مشرئ کې نور فوځ هریان کوټ ملاکنډ ته ولیبړل شه چې د بر ټوټئ لاندې دغه علاقه پرته ده. بله ورځ د انګریز فوځ کوټ د اتمانخېلو کلي ته ورسیدل چې دغه ځائ د کوټ اګری بر ټوټئ او د خانوړی د اتمانخېلو د ملاکانو سره یې جرګه وکه.

په دغه جرگه کې څه غوښتنې وشوې له انګریز له خوا په دې کې اتمانخېلو ۳۰۰ ټوپکه انګریز ته حواله کول هوم شامل وې. دغه نه پس انزرگۍ ته لاړه چې په غره په سر اتمانخېل وو خو دغه وخت له جرگې کېله هیڅ قسم تاسدم ونه شه. دغه کې په اګره کې د اتمانخېلو څخه وصله غونډه شوه چې کوم په جرگه کې ده وصلې خبره شوې وه.

.

په دسمبر ۱ مه کې انګریز فوځ بر ټوتۍ ته لاړو او له هغه ځاې واپس کوټ ته راغلو. په خانوړې کې گجر خان انکار کړی وو د وصلې له ورکولو څخه نو له هغه کور فوځیانو وران کړو.

په دسمبر ۴ مه نېټه فوځ له هغه ځاې واپس په هریان کوټ او هیرو شاه باندې خکته لاړل. او کوم جرگه شرط چې وو هغه کامیاب شه.

په دسمبر ۲۷ مه نېټه د پړانګ غار اتمانخېلو جرگه جوړه شوا په گنډیرې کلي کې چې هغه جرگه کې په اتمانخېلو ۲۰۰۰ روپۍ جرمانه او څه اصلحه انګریز فوځ ته حواله کول وو.

په دسمبر ۴ مه نېټه د پړانګ غار یا لمن اتمانخېلو باقې شرطونه ته تیار شه خو د وصله ورکولو څخه یې انکار وکړو. خو دغه کې په هغه اتمانخېلو جرمانه ولږیدله کومو چې فرنګې فوځ ته سخت نقصان رسولې وو

**.کال ۱۹۰۸ او اتمانخېل**

د کال ۱۹۰۸ کې حالات داسې جوړ شه چې پښتنو د خپلوا کۍ په غرض خپلې هلې ځلې کولې چې انګریز د دې خلکو له زورولو لپاره وخت په وخت بهانه غوختله چې دا خلک وځپې. دغه رنګه د کال **۱۹۰۸** قیصه ده چې په شاه یې ډېر اوامیل وو. دغه وخت د مومندو سره په ګډه د اتمانخېلو هلې ځلې شوې دې او د انګریز په خلاف یې میړنې خولې دې .

په ۱۹۰۶ کې د امبار اتمانخېلو او د مومندو حلیمزو او ترکزو د روحیې له مخې بې باوري لا پسې زیاته شوه. چې په کال **۱۹۰۶** په شبقدر کې د بریدونو لړۍ پیل شوه، په دغه کې د کوډه خېل بائزی د محاصیل په مشرۍ کې وو د امبار اتمانخېل د میرباز اتمانخېل او د حکیم په مشرۍ کې وو.

اتمانخېلو د ګومبټۍ **ملک میرباز خان** چې د **۱۹۰۸** کال په جګړه کې ټپي شوی او وروسته یې د انګریز له خواه

دغه بریدونه اول واری په جوګینۍ ۲۱ مارچ کې وشه چې دغه کې مومند وو. دویم ډیر غټ برید په ۹ اپریل په تنګی اباﺯۍ کې وکړي شه چې پکې له انګریز له خواه کور وران شوی وو.

په کال **۱۹۰۴** کې تنګي د اباﺯۍ سره نږدې برید وکړي شه چې له انګریز له خواه څلور سړی پکې اوژلی شه او یو کانټیبل پکې زخمی شه. او د دغه لښکر له خواه د ۳۰۰۰۰ روپو مالیت سامان لوټ کړی شه. چې په دغه برید کې د امبار اتمانخېل او کوډاخېل خېل بائزۍ مومند وو.

د دې بریدونو بریالیتوب د شکرګړ او د هغه په ګاونډ کې د هندوانو په منځ کې یو څه ویره رامینځته کړه او د دوی تر مینځ داسې اوازې راپورته شوې چې د پولې هغه غاړې یو لښکر راټولیږي.

انګریز مخکې وایې چې مومند له خواه د څه کولو توقو څمونږ نه وه لښکر خپلو کورونو ته لاړو خو په ۳ مارچ **۱۹۰۷** کې په شنکرګړ په کلی برید وکړي شه. د مومندو په منځ کې د دی خبر سره د لښکر څواک زیات شه. دوه سکوارډن ۲۱مه کیولري ته ارډر وکړی شه چې له نوښار څخه د مومندو سرحد ته ولاړ شي. دوی د لښکر له ویشلو څخه

څو ورځې مخکې د مارچ په څلورمه شبقدر ته ورسیدل خو د دوی له رسیدو لږ وروسته داسې ښکاریده چې بحران له منځه تللی وو.

مخکې انګریز وایې چې په حقیقت کې ستونزه په هیڅ ډول نه وه ختمه شوې. اکثر برخه د لښکر خپلو کورونو ته تللې وو خو په دې کې څه لښکر چې نه یې غوغتل چې واپس خپلو کلیو ته ستانه شې. دغه لښکر چې د محاصیل میرباز اتمانخېل او حاکیم په مشرۍ کې یوزای شوې وو. .دې ډلې د سوات او کابل سیندونو تر منځ د ځمکې پر سر د داوبا د بریدونو د پیل لپاره د وتکاکلو.

انګریز مخکې لیکی چې دوی په پرله پسې توګه درې ځلې شبقدر ته څېلمه د هندوانو دوکانونه لوټ کړل. د انګرېزانو د لاس لاندې له خاورې لومړۍ برید د مارچ په ۲۴ مارچ هغه مهال وشوه، د مروزۍ کلی چې شنکرګړ په شمال ختیځ ته په شپږ کیلومترۍ پروت دې. دغه کلی باندې برید شوې وو چې دوه هندوان پکې ووژل شول او ډېر مالونه یې له ځانه سره یوړل.

یوه ورځ وروسته د میرزاده کلی چې له مروزي څخه دوه میله لیرې. هوم دغه رنګه پرې برید وکړې شه. خو په دغه لښکر د واپسۍ په لاره عسا خان او غلام خان د ډاک حمله وکړه چې دغه عیسا خان او غلام خان همیشه د انګریز له خواه ملکرې وو. دغه یوه

جګړه چې لښکر په کې ډېر سخت وځپل شو. او دغه لښکر د دغه حملې له کبله اخوا شه. .د مارچ په ۳۰مه کې لږ وخت وروسته، دې لښکر خپل دریم زوروره برید ترسره کړو. له شبقدر نه نهه کیلومتره سویل ختیځ ته په یوه کلي چلیکار کې د هندوانو دوکانونه لوټ شول او لښکرې ډله د غنیمت په نیولو سره وپس شه.

مخکې لیکې چې په مجموعي ډول د شبقدر او ابازۍ د انګریزي فوځي پوستې مظبوط کړي شه چې دغه فوځ په علاقه کې ګشت لپاره ازاد وګرزي دغه یې په ۱ اپریل وکړه.

مخکې چې لښکر ته د فوځي ځواکونو د زیاتوالی علم وشه .د کوډا خېلو او د امبار اتمانخېلو چې ډېرې لښکر یې په یوه وخت کې چمتو کړي وو. خپلو ګاونډیانو ته یې د مرستې لپاره غږ وکړو چې د انګریز فوځ که د دوي سیمو ته ننوځي. محاصېل د کوډا خپل مومند اول واری د میټۍ موسا خپل ته درخواست وکړو خو التّه د غیرت خان اثر رسوخ زیات وو او دغه ملک د انګریز حکونت سره په ملګرتیا وو. نه د دغه وجې د ملاتړ ډېرې کمې ژمنې یې تر لاسه کړې. دغه وخت میرباز اتمانخېل همدې حال کې هڅه کوله چې په امبار اتمانخېلو او شاوخوا سیمو کې لښکر جوړ کړي او په غولام خان حمله وکړي کله چې دیو برید کوو په میرزاډیر کلي او دغه برید نه پس غلام خان په دې په لښکر حمله ور شوي وو بلکې لار یې ورته نیولی وه. خو په دې کې دوي لږه کامیابي ومنته. خو په دې مهال یې د افغان د ملیانو څخه مدد وغوښتو چې دا ځل یې کامیابي ترلاځه کړه . دوه نومونه چې مولا صوفی صاحب د بټېکوټ او حضرت صاحب

د بوټخاک نو دغه وخت په ننګراهار کې د جهاد لپاره اوازونه اوچت شه. قبایلو سمدستي د خپلو معیارونو په لور روان شول او په څو ورځو کې د خلکو ډلي وو چې ډیر پکې افغان خاصداران وو د افغان خاورې څخه بوهای ډاګ او کمالي ته راوتلي.

د اپریل په دولسمه نېټه حضرت صاحب پخپله کوده خپل مومند ته ورسېد او د صوفي صاحب زوی د خپل پلار په نمائندګۍ حاضر شو. څوک ناروغه وو. دلته دوی د هزارناو مشهور شاکر سره د پام وړ ملکري سره یوځای شول پداسې حال کې چې محاصیل چې په وروستي بریدکې د خپلې ونډې په بدل کې د کوډا خیل د جرماني د ورکولو په حال کې و، یو ځل بیا زړورتیا وښوده او په تیزۍ سره د لښکر سره یوځای شول.

اپریل په ۱۷ دغه غونډه دومره پراخه شوه چې سکواړډن کیوو یو کمان، او ۲ توپ او ۵۵۰ پیادل فوځ د لیپټنټ کرنل فین لپاره ولیږل شول او جنرال سر جیمز ویلکاک پخپله پېښور ته لاړ چې د نور ځواکونو بندوبست وکړي. د مچني قلعه د انګریز د ۵۰ په اسونو ناست فوځیانو او ۱۰۰ پیاده فوځیانو له خوا ونیول شوه او د متا او ابازي تر منځ په ګړۍ صدر کې پوسټ جوړ کړی شوه.

په همدې حال کې لښکر د انګرېزانو په لاس کې چې کومه خاورې وه په هغه لور حرکت پېيل کړی وو او په ۱۷ مه د کندهار په دره کې وو. په اتلسمه نېټه اصلي لښکر په کماړلي کې و او دلته حضرت صاحب په بله ورځ د غلام خان د کلی د ورانولو اعلان وکړو.

د اپرېل په ۱۹مه د دوی پرمختګ په دوو لارو د پر مخ روان و چې يوه ته يې د پنډيالی دره کې د ډاک له منځه وړل او بله يې د حضرت صاحب تر واک لاندې د پنډيالي چې پخوا يې د ګوډ ملا شاکر محاصيل کوډا خپل مومند او **ميرباز اتمانخېل** د ګاګ سوځول ترتيب کړی و. په ۱۹ مه دوي بيا د برجينا پاس ته لاړل چې چې دوی د شپه هغه خوا تيرا کړه.

غلام خان د لښکر په راټوليدو کې هڅه وکړه چې عيسی خېل او برهان خېل د خپل هدف لپاره وګټي خو دغو دوو قبيلو د دومره لويو ستونزو په مقابل کې له هغه سره مرسته ونه کړه. بيا يې خپل ورور وليږل چې له انګريز فوځ څخه د مرستې غوښتنه وکړي، خو له هغه سره مرسته کول ناسم وګڼل شوله او په همدې اساس يې د ځای د پيښودو پريکړه وکړه. هغه په حرکت کې له خپلې کورنۍ سره اباژي ته وتښتېدو. او التبه هغه ته د خپلې کورنۍ د استوګنې لپاره د قعلمه يوه برخه وړاندېز شوې وه، مګر د ځای په اړه د يو څه اختلاف له امله هغه پريکړه وکړه چې نږدې په يوه کلی کې پاتې شي.

مخکې انګرېز لیکي چې د همدې ورځې په ماښام د مټا په لویدیځ کې زموږ د پولې بانډې د پیندړیالی د لښکر ډزې وشوې چې بیا خبر میلو شه چې په ګړی صدر بانډې د شپې حمله کیدونکې ده د لښکر له خواه. دغه وخت لیپټنټ کرنل فین د ګړی صدر فوځ د اوتلللو حکم وکړو چې تاسو د دغه پوسټ څخه راوځئ او مټې پوسټ کې یوځای شئ. خو دغه وخت تیاره شوه او دغه فوځیان لاه په لار وو چې ډزې پرې وکړی شوې. دغه کې انګرېز وایې چې مونږ ته نقصان وکړي شه.

د 1 امه رائل وارویکشائر ریجمنټ له خواه یو فوځی اوژلی شه.

د ۱۵ مه پنجاب له خواه یو فوځی زخمی کړی شه.

د ۱۹امه لانسر له خواه یو فوځي زخمی کړی شه.

دغه انګرېز فوځیان چې کله ورسیدل دغه وخت لښکر ځان نورو ځایونو ته ورسوو

.

دغه له کبله سر جیمز ویکیکس فیصله وکړه چې ۲ توپونه او ۱۳۰۰ فوځیان د بریګیډئر جنرال انډرسن په مشرۍ کې د پښیور نه له شبقدر په طرف دغه فوځیان په شلم اپریل راروان شه. په دغه شپه بانډې د مټه په پوسټ بانډې څه لږې ډزې وشولې له لښکر له طرفه. خو په ۲۱ اپریل د بادې یوریا ځل بیا د لښکر له خواه ډزې وکړې شوې

چې جنرل ویکاکک ارډر ورکړو خپل انګریز فوځیانو ته چې په توپ پرې ډزې وکړی دغه چې درې ډزې وکړې شوې له هغه له کبله لښکر لږ وخت لپاره ځانونه محفوظ کړه.

دغه وخت د حلیمزی مومند د جنرال ویلکاک سره جرګه وکړه او ویل یې چې حضرت صیب او د صوفی صیب زوی دا وخت په غلنی مومندو کې دي. او له دغه پس کې دغه جینرال دغه مشوره ورکړه چې دغه خلک دې جرګې ته حاضر شي.

لاره کې دا ملکان میلاو شه د دغه لښکر سره چې په شهباز کور کې وو.

په بیرته راستنیدو کې دوی د حضرت صاحب د غور خبر ورکړ چې هغه به حکومت ته اعلان کړي. پدې کې باید داسې خبرې شاملې وي

د ملاکنډ نه د وتلو

د غلام خان تسلیمېدل

دغه فوځ لرې کول

خو دغه کامیاب نه شه یو رنګه.

دغه کې خبر هوم انګریز ته وشه چې میر صیب جان چې د کڼړ وو هغه هوم لښکر سره شه په برجینه پاس کې. خو دغه کې جنرال ویکاک ته د شمله هیډکوارټر نه حکم وشه چې مومند خلاف فوځی کاوایې وکړه. په دغه شپه لښکر له خوا د ټیلوپون تأر وشلولی شه او یو وړکې لښکر پرې ډزې وکړې خو انګریز ته پکې څه نقصان نه وو شوی. په بله ورځ لښکر په برید وکړې شه چې پکې د انګریز له خوا ۲ فوځیان اوژلی شه.

دغه نه پس مخکې لیکې چې په باجوړ کې هوم لښکر جوړیدل شروع شوې دې. دغه کې انګریز فیصله وکړه چې مونږ له د لښکر باندې برید کول پکار دي. دغه کې بریګیډیر جینرال انډرسن د ابازی له خواه وټاکلی شه چې برجینه پاس کوور کړي او بل طرف کرنل اونوین ته امر وکړي شه چې شهباز کور مومند طرف په خپل لاس کړي. په بله شپه بیا له لښکر د طرف نه برید وکړي شه چې د انګریز له خواه پکې یو فوځې اوژلی شه. په دغه وخت د انګریز له خواه په ټول مومندو کې بدحال شه ټول خلک وځپولي شه.

په دې جګړه کې د ټول مومند لښکر چې ۸۴۲۰ وو. چې دا جګړه په ټول مومند کې پیل شوي وه.

د اتمانخېلو د امبار سیمې له طرفه ۱۰۰۰ **اتمانخېل** لښکر وو.

پکې د ننګراهار وو. ۲۰۰۰ زره صافیان وو. او د کڼړ لښکر ۳۰۰۰ وو. دغه سره ۳۰۰۰

دغه د انګریز خلاف جګړه راوانه وه په مومندو کې چې دغه جګړه په ټول مومندو کې پورې شوه د صافو نه واخله تر اتمانخېلو پورې جګړه خپره شوه. چې خلکو ډېر په .میړنۍ سره جګړه وکړه خو له انګریز له خواه هوم کافي وزوریدل

لکه اخر افغاني صېب لیکې چې

په ۰ کښې د علاقه انبار اتمان خیل ښکته را پریوتل د پیښور په علاقه کښې ئې د فرنګي په ( ځوکو حملې شروع کړې. انګریزانو د کرنل آیس. ایچ. ګاډ فرے پولیټیکل ایجنټ ملاکنډ په کمان کښې د غاړې په اتمان خیلو او پړانګ غار حمله اوکړه. ورپسې د اتمان خیلو ناکه بندي .(ئې اوکړه .

د مۍ د میاشت په ۲۰ مه نېټه نهقي د دوم غونډ په غونډ په رارسېدو سره جنرال انډرسن د شمال په لورې وخوځېدو او غونډیې د (عمرا) کلي د دویزو صافو او اتمانخېلو د یوې ډلې د سختې مقابلې سره مخامخ شو کومورو چې د یوې غونډۍ په سر مورچه نیولې او مخې ته یې یوه ژوره نالۍ وه. غازیان چې د ښۍ لورې د اووه پنځوسم وسله وال کنډک د چپ لورې د سکهانو د درې پنځوسم کنډک او په منځ کې د اتم نمبر غرنې توپچې قواوو تر حملې لاندې راغلې وون د خپل سنګر نه په شا شوو خو کله چې انګریز لښکرې بیرته کلې ته ستنې شوې نو په دوی ورپسې راستانه او سخته جګړه یې وکړه. انګریزان لښکرې اعتراف کوې چې که څه هم د دښمنانو

(غازیانو) نه دوه سوه تنه مړه شول خو دوی په ډېرې مړانۍ توریل په لاس خواه څه نوره جګړه کوله او کله به زمونږ قواوو ته سل ګزه نږدې را نوتل. د شپې له خواه څه نوره جګړه هم وشوه خو کومه خاصه نتیجه یې ورنه کړه.

په ۲۴ مۍ کال ۱۹۰۵ بأندې خبر ورکوی مومند فیلډ فورس له خواه انډین سټیټ سیکریټری ته چې د کارغه پوسټ نه. چې پرون فوځی بریکیډ د لاری نه شاتو خېل ته په وړوکې جړپ بأندې منتقل شه. او مخکې وایې چې د امبار اتمانخېل ډیر سخته مورچه نیولی وه چې کم از کم **۲۰۰۰ اتمانخېل** وو چې د ناوکی خلک پکې هوم وو. وس هغیو دغه ځای نه منتشر کړې شه چې د اتمانخېلو خواه پکې تر پینځه پنځوست وژنی شوی او وایې چې مونږ انګریز فوځ ته هوم نقصان د وژنو په شکل کې شوي دي.

مخکې انګریز وایې چې مونږ د سهار ۹ بجو د ۲۲مه پنجاب له خواه له ۲ توپونه سره زوړ ځای پریښودو ګومبټۍ ته لاړه او د میرباز خان کور مو وران او ویچاړ کړو. او بیا ۱۰ بجو کې فوځ کوټه طرف لاړو.

په ۱۲ بجو کې زمونږ فوځ د غټ نور ځایی فوځ سره میلاو شه. بیا فوځ د دانش کول په غاړه د ملا کلې ته لاړو.

د انګریز د رسمي اسنادو په وینا د مې میاشتې په ۲۳ نېټه د ازاد سرحد د قبایلو یوې دوه زره کسیزې قوې د امبار د سیند شې لورې ته انګریزي قواوو په مقابل کې ټینګې مورچلې نیولې وې او د دوی د اووه پنځوسم وسله وال کنډک یو ویشتم او اتم نمبر غرنۍتوپچي قواوو سره یې جګړه وکړه.

د مې د میاشتې په ۳۱ مه نېټه سره غزال هغه وخت پایې ته ورسیده کله چې د سر جیمز ویلکاک انګرېزي لښکرې په شا تګ او ستنېدو ته مجبوره شوې. د انګریزې قواوو د روسنیو شلو ورځو تلفات په لاندې ډول ښودل شویدي

:

انګرېزي قواوې ۵۲ مړه ۴۲ زخمیان

هندي قواوې ۴۵ مړه ۱۷۲ زخمیان

اخر افهانی صپب لیکې چې

ورپسې په کال کښې د علاقه غاړه اتمان خیل ترخپل منځه ورانه راغله او په هغه کښې ئې د ( فرنګیانو علاقه تالا کړه. ورپسې په کال کښې د انبار اتمان خیلو او غاړه اتمان خیل را کوز شوه د هشنغره کلی اتمان زئ ئې تالا کړه حوصله ئې زیاته شوه تر پیښور پورې د پولیس ځوکئ به ئې تالا کولی. د اولنۍ جنګ عظیم ورځې ومې فرنګې په ځان وو. غړ ئې نه شه کول. اخر د چې په جرګو مرکو په کال کښې هیله اتمان خیل قلار شول. البته د غاړې اتمان خیل ئې درې زره روپۍ جرمانه کړل. په نوم جرمانه وه ادا نه شوه. په کال کښې د غاړې اتمان خیلو او د مشرقي

اتمان خیلو د علاقې سروے شروع شوه. اتمان خیل راپورته شول خو څه لوئ جنګ ونه شه.

**.۱۹۰۹**

په کال ۱۹۰۹ کې اتمانخېلو د حکیم خان په مشرۍ چاسده کې برید وکړو چې هغه برید کې یې هیندوان هوم وتختول. چې بیا هغه هندوان اتمانخېلو پریخودل.

**.۱۹۱۰**

په کال ۱۹۱۰ جنوری ۳مه نېټه باندې د امبار اتمانخېلو د انګریز سره جرګه وکړه په پیښور کې چې مونږ اتمانخېل به د انګریز د لاس لاندې علاقوں باندې بریدونه نه کوو. او دغه جرګه کې ورته دا هوم اویلې شو چې کو هیندو چې اصېل اتمانخېلو تختولی دې د انګریز د علاقې نه د هغې لپاره به ممکن کوشش کوو.

په مارچ کې بیا د اصېل اتمانخېلو له خوا هوم خوایش وکړې شه چې په امن باندې خبری اترې پکار دی. او دغه کې دویمه غټه جرګه د امبار اتمانخېلو په پیښور کې په ..مارچ ۳۰ مه اوشوا د انګریز چیف کمشنر سره.

**.۱۹۱۵**

.

په ۱۹۱۵ اګست په میاشت کې اتمانخېلو او سلازو په ګډه د دیر پانجکوړی په پل حمله وکړه چې د باجوړ له پاره یې خنډ جوړ کړو چې د کال د اخیره پوری په قوت کې پاتې شو

**.۱۹۳۰**

کله چې د قصه خوانی د پښتنو د وجلو پیښه وشوه په ۲۳ اپریل ۱۹۳۰ کې په دغه په تسلسل په مئ ۱۹۳۰ کې د پانجکوړی په مقام اتمانخېلو ډیر لوی تعداد سره مظاهری وکړی او د باجوړ اتمانخېل د انګریز سره د تسل لپاره راوتلل. دغه سره سره د اتمانخېلو لښکر د غرونو نه کوز شو هشنغر کې د تنګی کلی ته ورسیدل خو دغلته په لښکر باندی د انګریز د رائل ائرپورټ فورس په مدد د جازونو بمباریانی وشوی چې لښکر د مخکې راتلو نه په قلار کې. خو د اتمانخېلو د ځوانانو لښکر د واپس راتلو پر ځای د جندی خوړ باندی مورچې جوړیکړی او دغه لښکر یې منتشر کړی. دغه لښکر په داسې حال .کې منتشر شوي وو چې له انګریز له خواه پری په جازونو بمباریانې شروع شوې

لکه انګریز لیکې چې د اتمانخېلو د لښکر خبر راغی چې په سوات په سیند اتمانخېل راغونډ شوي دي. چې مونږ پري په مئ ۳۱ مه کې د سوات سیند په غاړه په بمباری د رائل ائر فورس له خوا وکړه. چې دغه لښکر په جندی خوړ کې ځکاره شه په جون ۱ مه.

چې په ۲مه نېټه مونږ پرې بمباري وکړه چې بره د اتمانخېلو په کلو هوم وشوا. مخکې وايې چې مونږ په جندۍ خوړ په لښکر باندې دشپې هوم بمبارۍ وکړه. مخکې انګريز وايې چې مونږ فصله وکړه چې د اتمانخېلو د کوم کلو نه لښکر راوچت شوې چې په هغه کلو باندې هوم بمبارۍ وکړو. وايې چې مونږ په ۱۷ او ۱۲ نېټه بمباري په برنګ اتمانخېل سيمه باندې وکړه. دغه وخت کې انګريزانو خپلې سياسي حربې هوم استعمال کړی.

خو په جولای په مياشت کې فقير صيب د عليڼګار يو ځل بيا د اتمانخېلو لښکر جمع کړو چې په دغه لښکر کې د اتمانخېلو ماندل شموزی عليزی او اصېل وو چې په سوات په سيند په جنوب کې دغه لښکر وو. وايې چې ځمونږ د رائل ائرپورټ فورس د نظر د ساتلو لپاره لاړو چې د هغه ځايه پرې اتمانخېل ځوانانو ډزې وکړې. مخکې انګريز وايې چې مونږ په ارنګ اتمانخېلو باندې په اپريل ۱۳ مه په کلو بمبارياني وکړې. په ۱۷ نېټه عليزو اتمانخېلو دباره سوات سيند باندې وغوښتل چې ماندل او شموزي اتمانخېل له وس هوم په جنوب کې دې چې په ۱۷ نېټه يو ځل بيا بمبارۍ وشوا.

انګريز ليکې چې د ريسالپور د هوای ډغر نه به مونږ تلو يو ورځ به مو په اتمانخېلو بمبارۍ کوله او بله ورځ به مو په وزيرستان کې په محسود کوله لکه وايې چې ۱۲ جولايې په محسود بمباری. په ۱۳ او نېټه په اتمانخېلو. په ۱۴ نېټه د اتمانخېلو په لښکر او دغه شان په ۱۲ بيا په محسود قبيلې. او په ۱۷ نېټه بيا په اتمانخېلو.

لښکر د ۱۰۰۰ ځوانانو وو. دغه فقیر علیننګار او اتمانخېل په جنډی خوړ کې مورچه زن شو او د هغه ځای یې په انګریز فوځ باندی د وینو تویولو سلسله جاری وساتله دغه وخت سرکاری علاقی ته هوم ډیر نقصان ورسیدو اخیر کې انګریز فوځ د کرنل سکاټ په مشری کې ډیر غټ فوځ له انګریز له خواه تیار کړو چې تنګی ته یې راولیګو چې په قبائلی لښکرو یې د توپونو ګولۍ ورول شروع کړه دغه نه پس لښکر منتشر شو چې په دغه جنګ کې ډیر قبائلی لښکری ځوانان شهیدان شو او ډیر زخمیان شو خو قبائلو هوم دغه فوځ ته ډیر نقصان ورسولو .

ژمونژ مجاهدین نومی کتاب کې عبدلحلیم اثر افغانی لیکی چې په کال ۱۹۳۰ کښې دا سیاسی تحریکونه اثر قبائیلی علاقو باندې اوشه. نو د ارنګ برنګ اصیل نومی اتمان خیل او د انبار بوټ کور نومی اتمان خیل په اګره او په پړانګ غار راښکته شول او د هشنغر په برید په جنډی خوړ پریوتل مورچې ئې اولګولی انګریزانو ورپسې سمدستې لښکر اوکړه. په اګره او په پړانګ غار باندې جنګ ډیره سخته مقابله اوشوه. د اګره په جنګ کښې د ملاکنډ پولیټیکل ایجنټ میجر جے. ډبلیو. تهامس ګلور. ائ. اے. اے. قتل شه. انګریزانو په اګره باندې د هوائي جهازونو ګوله باری اوکړه. ورپسې د کوټ مینه نه ئې سړک شروع کړ په ټوټېٔ ئې اګره ته او ساوه قدم په قدم جنګ وو اصیل څانګه له اتمان خیلو ښه مړانه ښکاره کړه. چه اګره په جنګ او هلی شوه د پړانګ غار محاز هک کمزوري شه. د قبائلي غازیانو لښکر واپس شه. غازیان د جنګی قیدیانو په شکل د فرنګي په لاس پریوتل په اګست ۰ کښې جرګه تر

مخه شوه. قيد يان ئې راپريودل. البته چې د غازيانو کومه وسله فرنګي له په لاس
.ورغلې وه هغه ئې غازيانو ته واپس نه کړه .

د اګره په غزا کښې يو نوي روحاني پښشواد عليګار فقير راښکاره شوی وو. ډير شهرت
ئې موندلو ږږ. هغه په اګست ٠ کښې د پړانګ غار په لار په پيښور د غزا کولو خيال
لرلو لېکن د اتمان خيلو په اليګار په فقير اعتبارنه وو لار ئې ور نه کړه.

## .١٩٣٢.

په کال ۱۹۳۲ کې دير د نواب او د اتمانخېلو او ورسره سلارزی جنګ وينختو چې د اتمانخېلو او
سلارزو د لښکر مشري عليګار فقير کوله. د ١١مه سپتمبر او په ٢٧مه په منځ کې دغه لښکر له خوا
د چترال روډ له انګريز لپاره په خطره کې وو. مخکې وايې چې مونږ ته د شموزی اتمانخېلو له
خوا ډير مزحمت مخې ته راغلې وو. چې د انګريز د بانړګی کيمپ ونړول شه. او په ١٧مه نېټه
په دغه لښکر په کلو مطلب د اتمانخېلو په علاقو د فوځی رائل ائر فورس له خواه بمبارياني
وشوې .

## .١٩٣۴

په جولایي ۳۱ مه نېټه فقیر علینګار د ۲۰۰ سوا اتمانخېلو ځوانانو په مدد سوات سیند نه پوره غاړه په ملاکنډ علاقه راغله چې د مخ نیوې لپاره سوات لیوي ولیږلې شوه چې دغه کې له لښکر له خواه ځوانان زخمیان شولی له هغه له کبله دغه لښکر واپس اتمانخېلو ته راواړیدل. د دغه سوات لیوي له په مدد کې د انګریز له خواه ۲۲مه ګورخا رائپلز دسته راغله او د انګریز رائل ائرپورټ فورس راغې چې کتنه وکړي د دغه غلاقې. په دغه ورځ د انګریز د رائل ائر فورس په فوځې جاز بانډې د لوی اګري اتمانخېلو ډزي هوم وکړی چې په جواب کې د رائل ائر فورس له خواه بمونه .ورغورځیدل په اتمانخېلو کې

په دغه کې انګریز اویل چې دباره لوی اګره اتمانخېل په ملاکنډ علاقه کې شامل کول پکار دي. چې په دغه کې د کوټ اتمانخېلو نه واخله تر اګری اتمانخېلو پوری سړک هوم شامل وو دغه سره دا فصله له انګریز له خواه وشوا چې په دغه علاقه یو فوځې پوسټ هوم جوړول پکار دي چې په اتمانخېلو نظر وساتلی شي. د اتمانخېلو لښکر یو ځل بیا د سوات په سیند راوغوتل چې برید یې د انګریز په زد وکړو. په فروری په میاشت کې چې فوځ په د قلنګی لپاره توجو مرکوز کوله. چې دغه کې رائل ائر فورس د پاسنه کتنه کوله. او دغه فوځ د جازونو په مدد دغه پوسټ ته داخلیدو نو .د لښکر له خواه مزحمت اوشه چې دوانه غاړي وژني وشوی

په کال ۱۹۳۴ اکتوبر ۹ مه نېټه کې اتمانخېلو ځوانان د علیینګار فقیر په مشرۍ کې برید وکړو کله چې د چترال انګریز فوځ یو په وپسۍ کې وو. دغه ځوانان د پانجکوړی په سیند راواغتیدل د باجوړ اتمانخېلو نه خو نواب لیوي او د انګریز رائل ائر فورس په مدد دغه د اتمانخېلو د ځوانانو لښکر واپس باجوړ ته وتمبولی شه. دغه کې د انګریز له خواه خواه توپونه ارټرلری هوم استعمال شوا چې دغه له .کبله اتمانخېلو ځوانان کې څه ځوانان شهیدان هوم شه.

د کال ۱۹۳۴ کې په نومبر ۸ مه نېټه علیینګار فقیر له طرفه انګریز ته مشکلاتو کې کمی راغلی وو ځکه چې د دیر د نواب په قعلعه چې کومی حملی کړی وی هغه یو رنګه ناکامي شوې وي چې دغه وجه یې کیدلي شوه. خو یو ځل بیا د الیینګار فقیر غونښتل چې کیسکنۍ او دره کې حملے وکړي او دغه لپاره یې د شموزۍ اتمانخېلو جرګه راوغښتله خو دا واري اتنانخېلو امادہ نشو نو هغه ځی علیینګار فقیر د سالارزو وطن ته لاړو چې بیا پشت ته لاړو.

## .۱۹۳۵

انګریز لیکي چې په کال ۱۹۳۵ کې فقیر علیننګار د اتمانخېلو ځوانانو سره یو ځل بیا لښکر تیار کړو چې په اګرې اتمانخېلو کې چې کوم فوځی سړک جوړیږي د فوځی پوسټ لپاره چې هغه پوسټ ورانه کړی او دغه سړک نه دغه انګریز فوځیان په قلار کې. په دغه موقه د نوښار نه د انګریز فوځی دسته راغله چې دغه لښکر منع کړی وایې چې دغه فوځي دسته د اتمانخېلو له طرفه ډیر ځیان ورسیدو او ډیر په مشکله دغه فوځی دسته ورسیده. چې په اپریل ۱۱مه نېټه د انګریز پولیټیکل ایجنټ مسټر ډبلیو ایچ بیسټ له اتمانخېلو له خوا اوژلی شوا. دغه کې له انګریز له خواه فوځیان او لیوی هوم اوړلی شوا چې زیاتره پکې زخمیان شه. پس کې دغه سړک په جون په میاشت کې د انګریز له مکمل شه خو قبائلو اتمانخېلو ډیر مزمت خودلې وو چې دغه کې ډیر زیان رسیدلې وو انګریز ته چې خپله انګریز وایې چې مونږ په دغه دوران کې ډیر د نقصان سره مخامخ شوي وو.

په ۵ اپریل ۱۹۳۵ کې د قبائلی لښکرو په مدد ډیری حملی په انګریز فوځ کولی او کامیابی حملی وی. او له انګریز له خواه بار بار دهمکیانی ورکیدلی خو فقیر علیګار د دغه دهمکیانو هیڅ قسم پروه نه کوله له دغه وجې فقیر علیننګار د اتمانخېلو لوی اګری علاقې کې پناه وغستله. له انګریز له خواه د سوات لیوی د علیننګار فقیر پر زد راولیګله خو د قبائلی لښکر په راتلو سوات لیوی واپس په تیخته شه. په فروری میاشت ۱۹۳۵ کې د انګریز د فوځ نوشهره بریګیډ یې جګړی لپاره ولیږلو. دغه علاقه ډیره سخته وه دمره سخته وه چې اسونه ورته خیجول هوم ګران وو. د ۲ میاشتو لپاره انګریزی فوځ

په خواه شاه واغوتيډو خو علاقه سخته وه او ډيره ګرانه ورته هوم وه. ۵ اپريل بانډی لښکر د انګريز فوځ سره په ډيره جزبه جنګ وکړو. دغه جنګ د قعله هری خواه او شاه کې وشه. چې دغه دفاع د انګريز د فوځ رائفل کمپنی کوله او ګورخه پلټن کوله. د ډول په غځولو لښکر د اسلام دره غونډ طرف ته مخکې شه. بيا په دری خصو کې دغه ويشلی شو يو د مشرق بل مغرب او ۳ دسته هوم دغلته ودريدل چې څه رنګه تواره خوره شوه لښکر د انګريز د فوځ په څوکۍ ورغله او هيڅ قصم پروا يې ونکړه چې چاګونه بمبارۍ کويل او يا دښمن په مشين ګن ډزی کوی خو جنوبي طرف نه د قعله دروازی ته راورسيدل ځنی ځوانانو پکې د انګريز فوځ نه مشين ګنی او ټوپکی هوم په زوره واغستلی. دغه کې پلاټون کمانډر صوبيدار هوم وژلی شه. او ډير فوځيان يې هوم اوژل او زخميان يې کړه. دغه کې خبر بريکيډ کمانډر ته وشه چې حرکت کې راغی چې په توپ خانون يې ډزی شروع کړی په لښکرو دغه کې صحر شه چې په وار وار به قبائلو حملی کولی او واپس به غرونو طرف ته تلل.

انګريزانو له دغه وخت کمک له نور فوځ راغی چې بار بار يې په فقير علينګار حملی وکړی خو فوځ ته څه کمياب ميلاو نه شوه. بيا فقير عليګار د شموزو اتمانخيلو جرګه راوغوختله. ډير وخته پوری د علينګار فقير د انګريزانو د تنګ کولو کوشش وکړو. ارتهر سونسن په خوله چې انګريزانو تسليم کړه چې د لوی اکری مهم هغه منظر چې وو که ډير نه وو خو په منځ کې ډير خوفناک وو څه رنګه چې په امبيله جنګ کې سرنيول چمپبر لين او ملاکنډ کې چې جنرل بائډن بلډ دغه خوفناک منظر ليدلی وو

فقیر د علیګار .

په ۵ اپریل ۱۹۳۵ کې د قبائلی لښکرو په مدد ډیری حملې په انګریز فوځ کولی او کامیابی حملې وی. او له انګریز له خواه بار بار دهمکیانی ورکیدلی خو فقیر علیګار د دغه دهمکیانو هیڅ قسم پروه نه کوله له دغه وجې فقیر علینګار د اتمانخېلو لوی اګری علاقې کې پناه وغستله. له انګریز له خواه د سوات لیوی د علینګار فقیر پر زد راولیګله خو د قبائلی لښکر په راتلو سوات لیوی واپس په تیختنه شه. په فروری میاشت ۱۹۳۵ کې د انګریز د فوځ نوشهره بریګیډ یې جګړی لپاره ولیږلو. دغه علاقه ډیره سخته وه دمره سخته وه چې اسونه ورته خیجول هوم ګران وو. د ۲ میاشتو لپاره انګریزی فوځ په خواه شاه واغوتیدو خو علاقه سخته وه او ډیره ګرانه ورته هوم وه. ۵ اپریل باندی لښکر د انګریز فوځ سره په ډیره جزبه جنګ وکړو. دغه جنک د قعله هری خواه او شاه کې وشه. چې دغه دفاع د انګریز د فوځ رائفل کمپنی کوله او ګورخه پلټن کوله. د ډول په غګولو لښکر د اسلام دره غونډ طرف ته مخکې شه. بیا په دری خصو کې دغه ویشلی شو یو د مشرق بل مغرب او ۳ دسته هوم دغلته ودریدل چې څه رنګه تواره خوره شوه لښکر د انګریز د فوځ په څوکۍ ورغلله او هیڅ قصم پروا یې ونکړه چې چازونه بمباری کویل او یا دښمن په مشین ګن ډزی کوی خو جنوبی طرف نه د قعله دروازی ته راورسیدل ځنی ځوانانو پکې د انګریز فوځ نه مشین ګنی او ټوپکی هوم په زوره واغستلی. دغه کې پلاټون کمانډر صوبیدار هوم وژلی شه. او ډیر فوځیان یې هوم اوژل او زخمیان یې کړه. دغه کې خبر بریګیډ کمانډر ته وشه چې حرکت کې راغی چې په توپ خانوں یې ډزی شروع کړی په لښکرو دغه کې صحر شه چې په وار وار به قبائلو حملې کولی او واپس به غرونو طرف ته تللل.

انګریزانو له دغه وخت کمک له نور فوځ راغی چې بار بار یې په فقیر علیینګار حملې وکړې خو فوځ ته څه کمیابي میلاو نه شوه. بیا فقیر علیګار د شموزو اتمانخېلو جرګه راوغوختله. ډیر وخته پورې د علیینګار فقیر د انګریزانو د تنګ کولو کوشش وکړو. ارتهر سونسن په خوله چې انګریزانو تسلیم کړه چې د لوی اکرې مهم هغه منظر چې وو که ډیر نه وو خو په منځ کې ډیر خوفناک وو څه رنګه چې په امبیله جنګ کې سرنیول چمپبر لین او ملاکنډ کې چې جنرل بائډن بلډ دغه خوفناک منظر لیدلی وو

# حوالې


1. journal of the Royal Central Asian Society-Vol XIX- By The Royal Central Asian Society 1932 page 29-30-31
2. The Bombay Chronicle 8 Nov 1934
3. India in 1932-33 publish in 1934-page 5
4. India in 1934-35 printed by Simla 1937 Page 85-86-88-109-110-
5. Frontier and overseas expeditions from India Vol-1 - Government Monotype Press 1907- pages 412
6. An Official account of the Chitral expedition 1895 By W R Robertson- Calcutta: 1898 office of the superintendent of government printing India. page- 65-66-
7. A COLLECTION OF TREAIES ENGAGEMENTS AND SANADS RELATING TO INDIA NEIGHBOURING COUNTRIES by Aitchison C.U.-Vol 11- MITTAL PUBLICATIONS DELHI - Reprinted in India 1983
8. The Bombay Chronicle 28 June 1933-Publication date 1933-06-29
9. The Cyclopedia of India and of eastern and southern Asia third edition
10. Hayat Afghani, Muhammad Hayat khan
11. Record of the expeditions undertaken against the north west frontier tribes. compiled from the military and political dispatches lieu colonel McGregor’s gazetteer by lieutenant colonel W.H. Paget Calcutta office superintendent of government printing 1874. pages 167-169-189-190-191
12. lumsden of the guides by sir peter stark lumsden G.R. Elsmie. page 110-111-112
13. Frontier and overseas expeditions from India Vol-1 - Government Monotype press 1907- pages 405 to 410
14. Frontier and Overseas expeditions from India. Vol 1. Supplement A. 1908 operations against the Mohmand’s. pages 8 to 18 - 55
15. Accounts and papers. 65 volumes. session 29 January 1908 to December 1908. (pages 132-134-135-148- 150-151-
16. Accounts and papers 57 volume- 12- Military Operations in the north west frontier progress and condition session 8 February 1898 -12 august 1898. pages. 1-2-7-42-61-67-72-78-79-93
17. Frontier and overseas expeditions from India Vol-1 - Government Monotype press 1907- pages 399-400-401-402-403-404-405-406-412

18. N.W.F.P Gazetteers. Peshawar District-Vol A-1931.Printed at the Civil and military gazette ltd by E.G. Tilt manager 1934- page 78-79

19. A COLLECTION OF TREATIES. ENGAGEMENTS AND SANADS.RELATING TO INDIA AND NEIGHBOURING COUNTRIES. Complied by C.U. AITCHISON B.C.S. VOL-11 -XI. Calcutta Superintendent government printing India 1909 -Pages 17-18-19

20. The Bombay Chronicle 25 November 1934

21. Summary of the principal events and measures of the viceroyalty of the earl of Minto volume 1- by government monotype press Simla 1910-page 8-12-66-77-

22. Reference (د غازي میرزمان خان وندہ - عبدرحمان زماني -ص ۱۳۹- ۴۶-۱۴۰)

23. Reference۶۶۶ محمد شفیع صابر-تاریـــخ صوبه سرحد- پاڼه